# لمړۍ او وروستۍ خاطره

ليکنه : استاد نوراحمد «قران مل»

نېټه: ۱۴۰۳قوس۱۴

الحمدلله وکفی وسلام علی عباده الذین الصطفی!

قال تبارک الله تعالی!

وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا [1]

د کندهار پوهنتون د غونډو په تالار کې د محضرـ درنو حاضرينو د پوهنتون رهبري هيئت، د پوهنتون مخکي رئيس پوهاند وثيق صاحب ، درنو استادانو او ګرانو محصلانو !

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!

د افغانستان په معاصر تاريخ چي کله د افغان تاريخ يادونه کيږي د پنځو شخصيتونو د ځېرو جولې د خلګو ذهن رادننه او خطور کوي.

د هيواد د معاصر د تاريخي تيورۍ اړوند د معاصر افغانستان تيوريسن حاجي ميرويس خان «هوتک» او د موډرني حکومتولۍ په سيستم کي د ملي دولت او حکومت ستراتيژيست لوړ درشل احمد شاه «ابدالي» چي د ميرويس خان نيکه د تيوري په تقليد يې د منظمي حکومتولۍ بنسټ ايښئ دی ياديږي.

ددې دوو درنو ځيرو تر څنګ د معاصري شرقي نړۍ او نړۍ والو اسلامي نهضتونو را بيداروونکي افغان سيد جمال الدين ځيره چي د نړۍ والو سياسي بيداريو سرچينې هم په معاصر وخت او سياست کي د نوموړي د عميقو کارونو په تر سره کولو را منځته سوي دي، ديادوني ده.

د شرقي اسيايي تاريخ په قدامت، سپړني او د هنديکو ژبو په پوهه سره د معاصر، ماضي او قديمي تاريخ په راسپړنو کي د سيمي او هيواد د تادر تاريخ د پنځونو را راسپړلو اړوند معلومات تر شا پريښي دروند استاد مرحوم علامه عبدالحی «حبيبي» دی.

[1] سورت البقرة ۲۶۹ ايت

تـر حبیبــي وروســته د  ژور تحقیــق، فنونــو پــه راپېژنــدني او معــاصرو «وجهــه تســمیه ګــانو» پــه ځـانګړي مهـارت را پېژنـدني سره مرحـوم اسـتاد علامـه عبدالشـکور رشـاد صـاحب ځیـره چـي د افغـان تاریخ پر افق به تر ډېره ځلیږي.

درنو!

د مرحــوم لــوی اســتاد علامــه حبیبــي د مړینــي پرمهــال چــي زه لا کــوچنی وم او زمــوږ د ځینــو دوسـتانو کورونـه پـه کابـل کـي وه او زه هـم کلـه کلـه د مرحـوم پـلار سره کابـل کـي وم، د تلویزیـون پـر سکرین د مرحوم «حبیبي» د مړیني رپورټ د هغه د لیدني بې برخي کړئ وم.

خـو د هغـه کشرـتوبه مـي تلوسـه وه چـي درانـه شخصـیت د لیـدني فـیض مـي پـه برخـه سي، غالبـاً ۱۳۷۷ ل کـال بـه وو، درونـد اسـتاد رشـاد لـه کابلـه کنـدهار تـه راغلـئ او دلتـه پخپـل کـورکي اسـتوګن وو، او د سیمي فرهنګـي کـړی یـې د لیـدني لپـاره پـر را مـاتي وې، مـا هـم هڅـه وکـړه چـي وې ویـنم، کــورتې وغلــم صرف د لیــدني پــه منظــور یــو څــو دقیقــې ور سره تیــري کــړې، بیــا وروســته پــه ۱۳۸۳ ل کـال کـي لـه خپـل خـوریي خلیـل الله هـوتکي سره کابـل تـه ولاړم، چـي یـوه ورځ مـو د رشـاد صـاحب پـه ژونـد زیـارت کولـو تـه ور ایسـته، اسـتاد د مهربـان او درانـه سـپینږري پـه دود تـر روغبـړ وروسته پوښتنه وکړه:

د چا دکورنی یې؟

ما دپلارنوم ور واخیست.

بیایي راته وویل: نور مشران دي را وپېژنه نیکه دي څوک وو؟

د نیکـه د نامـه پـه ور ښـوولو مسـکی سـو او پـه درانـه ډډ آواز یـې راتـه وویـل: ښـه، دا مـي انـډیوال وو او کتابخـانې تـې ورتلـم، ددې سره سـم زمـا سره یـو کـوچني ټایـپ ریکـارډر را سره وو. دده بې اجازې مي د ثبت بټن پر وواهه، ده هم څه نه راته وویل.

زمـوږ د کـورنی پـه هکلـه چـي بایـد مـا د یـو چـا څـه اورېـدلي وای لـه مرحـوم اسـتاد رشـاده  مـي واوریــدل، چــي نــوي خــبري پکښــې وې، وروســته یــې د پښــتو ژبي پــر دوو تــورو (ږ او ښ) اوږدې او مفصــلي خــبري وکــړې، بیــا یــې د «دري او فــارسي» اړونــد اوږد بحــث وکــړ او دایــې یــې لــه خــبرو ښـکاریده چــي اصــلاً دري هــم خپلــه فــارسي ده او د ځینــو ســیاسي ملحوضــاتو لــه درکــه د وخــت حکومـت دا نـوم ورتـه غـوره کـړئ. د اسـتاد مرحـوم دا ثبـت خـبري چـي تقریبـاً  ٦۰دقیقئـي یـوه فیتـه کیږي په کورني «غریبک کتابتون آرشیپ» کي ساتله کیږي.

د استا د پوښتنو انداز د مفاهمې یا Communication په برخو کې د پرانیستو ۱۳ موډلو پوښتو څخه د «استنطاقي» ډول درلود.

د استاد دوهمه خاطره زما لپاره نه، بلکې د هغه د ټولو خواخوږو لپاره دردوونکې وه، سهار مهال مو زموږ د یوه دوست مولوي متوکل احمد «متوکل» کره چای چیښلې، د قوس ۱۱ نیټه وه، د متوکل صاحب میرېزي ماما انجنیر عبدالغفور «خدام» زما مرحوم قبله ګاه «حاجي عبدالحمید اخندزاده غمجن» ته ، وټلفون ته تر جواب ویلو وروسته وویل: حاجي ګل اغا !

استاد رشاد صاحب په سخت حالت کې دی او وزیر اکبرخان روغتون تې انتقال کړئ، که مو خوښه وي، پوښتني ته بې ورسو. بیله متوکل صاحبه نور ... تر چایو چیښلو وروسته په تیزفتار موټرکي را سپاره سوو ، زما کشر ورور حاجي عبدالخالق «احدي» موټر د روغتون پر خوا رارهي کړ.

روغتون ته په رسیدو لوږ منزل ته په ور پورته کېدو سره د استاد مشر زوی محترم ډاکټر طارق رشاد، د هغه زوم مرحوم ډګروال صاحب، داستاد رشاد لمسی ښاغلی حامد متواضع او د استاد درنه او پتمنه لور کوکو رشاد حاضر وه، د استاد دصحی علائمو د کنترول او چک کولو لپاره دروغتون د روغتیا پالانو تر څنګ ډاکټر صاحب طارق «رشاد» هم ور سره بوخت وو.

د ورتګ پر مهال او تر یوه پاو یا دشلو دقیقو پوري استاد ددې وو چې څوک وپیژني، زموږ له پلار، بیا له خدام او وروسته ... سره یې د کمزورو خبرو او ضعیف احساس لنډه مفاهمې وروسته استاد ددې سو، چې لیدونکي تکلیف ورنکړې، ګړی ور سره وو، دا مهال چې د استاد د شکري د معاینات نتیجه را وړه سوه،او بیا چې ډاکټر صاحب رشاد یې فشار وکوت، څه اندیښنه یې څرګنده کړه، چې په طبابت کې د فشار دلوړوالي سره د شکري کښتوالی مناسب ..... بیا وروسته څه فریشانه غوندي وو، خو لا اخته وو، موږ په اطاق کې د ازدحام د مخنیوي په خاطر ځني رخصت سوو، د روغتون څخه د راوتلو وروسته په لار کي خدام صاحب ته زنګ راغئ.

پر استاد دي الله ﷻ ورحمیږي.

ددې سره د ژوند دمېني څخه ددې ستر انسان جسماً تګ وکړ، خو تر شا یې د معنوي نړۍ جزیرې پریښووې .

«خدایـــــه څـــــه ســــــول هغـــــــه ښـــــــکلي خلـــــګ
په ظاهر په باطن سپین سپیڅلي خلګ»

